# کندهار



په کندهار کی داعلیحضرت احمدشاه بابا گنبته چی زموږ د معماری یوه ستره او ښکلی نمونه ده

یوه ادبي پارچه

# زما جهان

د پسرلي په موسم کی د ګلونو په باغچو او د بهاندو ولاړو له څنګه چی کله نقاو نوی رنګ موندلی، او د خوشحالی پیالي لبریزه وي، مځکی شین کمیس اغوستی او غوړېدلی شګوفه درسا قه متونو د سرتاج او قدرت د زیبارایستلو شایسته محصول د نظربازی دعوت ورکوی هلته به ما پسې ځان ماسټری کوه زه نه موندل کېږم.

* * * *

د نیسان د اوربځو به باثمره غېږ کی چی هر څاشکی ئې بوه ځاېدونکی مرغلره په وجود راولی، نباتات او د مځکی تنکی ځامن لکه وچموری ماشومان په خپلو سرو باد خوګانو او ناز کو شنډو سره د دې مهربانی مور څخه د باران اوږدو هیله او تمنا کوی هلته زه نه یم.

* * * *

د سهار په سپېدو کی هغه وخت چی د نور او تیارې جګړه خلاصه، او مځکی والو ته د ظلمت ماته اعلانېږی، هلته چی بادصبا په خپلو پستو وزمو سره موالید د درانه خوب راوېښوی او د طبیعت د لرنې پېکی د بوې بخې مشاطې په شان ور زمونځوی هلته په ما پسې ځان مه زهیروه زه نه یم.

* * * *

د سپوږمۍ په شپو کی چی پردېسان د آسمان د ښاوی په ننداره

بس وخت دي خپلی زړېنی وړانګې د مځکی پر غرلی داسی نثار کړی وی چی حتی د مظلومانو او خوارانو کوروته هم وړانګی اوروښانه وی په داسی شپو کی چی مینان د وصال په میو مست او د رازو نیاز هنګامې تودې وی هلته ما مه پلټه.

* * *

هلته چی د ښکلو د پیاوړیو شرنګهار د مړو زړونه په نڅا راولی او د بې مغزو پېغلو خنداګانې د زهرې غشو زړونه

[اوړ د پښتنی په دریم مخ کی]

## ددې گڼې مضامين


د کندهار دريم ... په [۱] مخ کې
مطالعه او تفکر » [۲] » »
د کلتور آغاز » [۳] » »
د اشرف الوزراء... » [٦] » »
د علم النفس ... » [۹] » »
څيني ليکوال... » [۱۳] » »
په کندهار کې .. » [۱٤] » »
«اوستا» » [۱۵] » »
تطبيقي تاريخ په [۱٦] مخ کې
پښتون او د پوه » [۱۷] » »
د حميد پر غزل ... » [۱۸] » »
زه هم څلمی يم » [۲۰] » »
ستادباره » [۲۲] » »
مثنوی ساقی نامة » [۲۳] » »
شال او بولان » [۲۵] » »
کريستف کلمب » [۲۷] » »
مرحوم محمد عثمان » [۲۹] » »

کندهار: د نوی کال در اتلو له کبله
خپل معظم تولواک او ټوله ګران
ولس ته په خپل وار د زړه له کومې
تبریکات وړاندې کوي.

د ۱۳۴۱ لمریز کال د [حمل] میاشت
د ۱۳۸۱ قمری کال د [ذیقعده] «
د ۱۹۶۲ میلادی کال د [اپریل] «
د دریم کال لومړی ګڼه
پرله پسې ګڼه [۳۵]

کالنی «بیه»
په کندهار کښې [۲۸] افغانی
په دننه مملکت کښې [۳۳] «
په د باندنیو هیوادو کې یو ډالر

مسئول چلوونکی
ا، م، «کرزی»
اداره د شهیدانو واټ
[ د دولتي مطبعې څنګ ته ]

کنـدهـــار

میاشتنی خپرونه
ادبـی . تاریخی
اجتماعی . علمی

# د کندهار دریم نشریاتی کال

د کندهار مجلې دوه نشریاتی کلونه بشپړ کړه او ددې ګڼې د خپرېدو سره ئې هم په دریم کال پیل کېږی .

او مړی داخبره د یادولو وړ ګڼم چې ووایم: مجلې، اخبارونه، جرائد او داسې نورې خپرونې د مدنیت په انکشاف د علم او معارف په تعمیم او د فکرونو د روښانولو په لار کې ستر خدمت کړلای شی .

مطبوعات نن ورځ د یوې قوې روح روان بلل کېږی ، حقوقی پوهان ئې د دولت څلرم قدرت معرفی کوی او د بشری ولسونو دفکرونو او باطنی خیالاتو د ښکاره کولو هنداره او د ملی ارادو ممثل ئې ګڼی، د نړۍ د اوسنیو هیوادو په لړ کې په هر مملکت کې چې مطبوعاتی قدرت ډېر او د خپرونو شمېر په زیاته اندازه وی هغه مره هغه مملکت د سیاست، اقتصاد معارف او اجتماعی ستون له پلوه پرېالی وی .

زموږ په ګران هیواد کې چې دا دوه سوه کاله د ځینو سیاسی علتونو له امله څرنګه چې ښائیده په داسې چارو کې پرمختګ نه دی سوی، کله چې هغو هغه علتونه د سیاسی فضا څخه ورک سوی دی، همدا دی چې سمدلاسه مو نیمګړ- تیاوی یو په بله پسې مخ پر بوره کېدودی چې بدې ارتقائی سیر کې هغو د خپرونو او مطبوعاتو زیاتوب هم ورځ په ورځ مخ پر لوړ روان دی د کندهار مجله چې عرض- اندام ئې تقریباً لا تازه بللای سو د دغه ارتقائی سیر مولود دی او په خپل تېر دوه کلنی ژوند کی ئې هغه ځای په چټوس او قدرت ملګرتیا کړېدنه ولس او خپلو ښاغلو لیکوالو ته ئې د خپل مسلك او هدف سره سم موضوعات او مضامین تهیه کړی او خپاره کړی دی او نور دا هم په نظر کې دی چې د اوازمو او وسائلو د تهیې او د ښاغلو لیکوالو د مرستې په شرط زموږ د ادب، کلتور تاریخ او داسې نورو برخو په معرفی او تهیه سره مجله ښایسته او برجسته بلکه په پوره کامل توفیق سره ئې صحافت رنګینی او تولو خپرونې په زړه پوری وسائو خو بدې زمینه کې بیا هم دا خبره ضروری ده هغه داچې ښاغلی ملګری او لیکوال مو یوازې پرې نه دی او لکه تراوسه چې ځینو، نه یو هېر کړی وروسته مو هم یاد کی او دا خپله مجله لکه څرنګه چې ښائی وپالی .

په پای کې دا لازمه بولم چې د مطبوعاتو د مستقل ریاست او

# مطالعه او تفکر

څنګه چې ډېره ژبانه مطالعه فکر وسعت او ودې ته نه پرېږدي ډېر لیکل او ډېر لوستل هم د حقایقو د معرفت مخه نیسي.

د دنیا ډېره لویه کتابخانه چې بې نظمه او بې ترتیبه وي هغه ارزښت نه لري لکه یوه کوچنۍ منظمه کتابخانه چې ئې لري.

همدغه راز ډېره ژبانه پوهه چې په ذهن او دماغ کې ښه هضم شوې نه وي له هغو لږو معلوماتو نه لږ قیمت لري چې په جزئیاتو کې ئې ډېر غور او دقت نه وي شوی.

په حقایقو باندې سړی هغه وخت پوهېدلی شي چې د علیت په قانون پوه شي او جزئیاتو کې مطالعه واري. څنګه چې انسان مطالعې ته ضرورت لري تفکر ته ئې هم لري مطالعه او تفکر د انسان په ذهن کې دوه متضاد تاثیرونه لري چې که یو زیات شي هغه بل کمېږي.

مطالعه د سړي ذهن د هغو افکارو او عقایدو له تاثیر لاندې راولي چې ممکنه ده د انسان له ذاتي احتیاجاتو سره مخالفت ولري. آزاد تفکر یعنې د هغه طبیعي سیر او حرکت تعقیب چې محیط او ضروري مسائل ئې د انسان په ذهن کې پیدا کوي د مطالعې په شان څه خاص شی په ذهن کې موجود نه وي بلکه د فکر کولو تومنه ذهن ته بېداري همدغه سبب دی چې ډېره ژبانه مطالعه د شخصي فکر د پرورش مخه نیسي او سړی څه قدر سطحي او ناپوه کوي علما او پوهان همدغه کسان دي چې ډېر کتابونه ئې لوستي دي مګر نوابغ او د فکر خاوندان چې د انساني مدنیت لارښودونکي دي او د بشریت قافله د ترقۍ خوا ته بیائي، هغه کسان دي چې د جهان په کتاب کې ئې غور کړی دی او د نورو په خبرو کې ئې خپل فکر نه دی بایللی.

---

ټولو همکارانو له هغو مرستو څخه چې تراوسه ئې زموږ سره کړې او زموږ هیله ئې تر ممکنه حده را تر سره کړې او د دې مجلې په چلولو کې ئې وس نه دی سپمولی د زړه له کومې شکرګذاري وکړم. په درناوي.

ا: م: کرزی

له مینزوی فرام کیف توسکای سکریپر څخه — مترجم عبدالله [لالی] د ادبیاتو محصل

# د کلتور آغاز

[۲]

[ د تیری ګڼې پاته برخه ]

جنوب شرقي اسیا یوه توده او مرطوبه سیمه ده چې مېوې او بېخ-ارونکي نباتات ډېر او ډېر پېدا ئه لري لېکن جنوب غربي اسیا یوه وچه سیمه ده او وګړي ئې پخوا د مختلفو وښو او نباتاتو په تخمونو چلاو کاوه.

په دغه ځای کې د حبوباتو د کرلو طریقه چې زموږ د تمدن د کرهڼې اساس او بنسټ دی، شروع شوه.

غنم، اوربشې، جوارې، توري اوربشې او نور؛ هغه حبوبات دي چې له خودرو نباتاتو څخه پدغه اته او سیمه کې په لاس راغلي دي. ددې حبوباتو کرهڼه بیا وهندته چې یو تود او مرطوب اقلیم لري هم خپره شوه لېکن په هند کې یو ډول غله یعنی وریجې چې په باطلاقي ځمکو کې شنې کېږي هم کرلی کېدلی او د وګړو د غذا یوه مهمه برخه ئې تشکیلوله.

د حبوباتو د کرهڼې سره سم د څارویو اهلي کول هم منځ ته راغی خو په یقیني صورت هیڅوک نه پوهیږي چې کرهڼه د مخه منځ ته راغلې او که د څارویو اهلي کول. دا لکه د چرګې او هګۍ مسئله ده چې کومه یوه به د مخه پیدا شوې وي.

هغه وخت چې انسانان د حیوا-ناتو په ښکار پسې سرګردانه ګرځېدل، دوی حبوبات نشوای کرلای او ژوي ئې هم نشوای روزلای ځکه چې د ځان او ژوو لپاره ئې د خوراکې کافي ذخیره نه درلوده.

انسانانو ډېر وروسته د ژوو د اهلي کولو فکر پیدا کړ او څاروي ئې د خپلې کورنۍ غړي وګرځول. هر وخت چې به ئې ضرورت ورته پېښ شو حلال به ئې کړل او ورو ورو به ئې خوړل.

د ژوو اهلي کول د انسان د ژوند ډول او ورنګ بدل کړ.

او مړی حیوان چې انسان له هغه سره د دوستۍ علاقه تأسیس کړه سپی ؤ.

سپی نه یوازې د انسان ډېر ښه ملګری بلکه ډېر پخوانی یار دی. انسانانو د مخه زدې چې د کرهڼې لپاره او یا د ژوو د اهلي کولو لپاره کوښښ وکړي د سپیانو سره ئې د دوستۍ مزي او تار اچولی ؤ. د دغه اوږده تاریخي متقابل احترام له کبله دی چې انسانانو هیڅکله وسپي نه بې د ملګري په سترګه په بل څه ندی کتلی.

انسانانو او سپیانو پسله پخوا وختو کې د خپلې ګډې ګټې په سبب یو ځای ژوند تېراوه، سپیان په ابتدا کې د انسانانو په کوډلو کې اوسېدل او یا به د دوی سره و ښکار ته تلل. انسانانو چې به کله ښکار وکړ د ښکار ځینې برخې به ئې سپو ته اچولې چې به هغوی سره به ئې ګذارن کاوه. ارغونی انسانان به ډېر خوښ ؤ چې سپیان واري، ځکه چې سپیان

د شامې ارسامعې قوي حس ورته لري او د دوی په واسطه کولای شي چې د ښکار څرك و څښتن ته معلوم کړي او يا دوی د دښمنانو له راتګ نه خبر او نجات ور کړي.

مونږ داوسني آسترالیانیانو له کتنې څخه حدس وهلای شو چې ارغوني انسانانو څرنګه سپيان تربيه او اهلي کړل.

استرالیانیان د سپیانو نسل ګیري نه کوي بلکه وحشي کوتربان له ځنګلو څخه رانیسي او تربيه کوي ئې خو کله چې د غريزي عمل په واسطه تحريك شي چې ځانته جفت پیدا کړي بېرته ځنګلو ته ځي او وحشي ګرځي تصادفاً يو سپي يکښې پیدا شي چې د خپل څښتن سره تر مرګه پوري وا وسېږي.

دا دول سپيان ډېر ارزښت لري او خورا ښه خواړه ور کول کيږي.

د ژوو اهلي کول د انسان د هغه ذوق او مينې څخه سرچشمه اخلي کوم چې د ژوو د بچيانو سره ئې لري. د ځاروېو واړه چيچان ډېر ښایسته او د ساعت تېرې وړ دي وکړی لوبې به کوي او خپل ساعت به تېروي.

هر ښکاري چې د کوم حيوان تاوبې وموږي د حيوان نر او ښځه حلالوي او چيچان ئې و خپلو کوچنیانو ته کورته راوړي چې لوبې به وکړي.

کوچنیان او حتی لویان هم د ژوو د چیچانو سره ډېره مینه لري. خپل واړه چیچان تر ممکنه وخته پوري ساتي او روزي. لیکن کوم وخت چې ضرورت ور ته پیدا شي او یا لوی شوي چیچان خطرناك ثابت شي حلالوي ئې.

حيوانات به اول کې د ساعت تېرې او مفيد والي له کبله اهلي شول اما کوم وخت چې انسانانو حيوانات په عملي کارو کې او يا نورو مقصدو لپاره په کار واچول نو ئې د ډېر شمېر ژوو په کورني کولو بیل وکړ. يو وخت انسانانو نسبت و نن ورځې ته ډېر انواع اهلي حيوانات درلودل. په ارغوني مصر کې ډېر اهلي سوبان او هوسۍ وې لیکن څرنګه چې هوسۍ او غرڅه نسبت و نورو ته لږ مفيد ثابت شول نو ئې اهلي کول هم پرېښودل شو. ټول ژوي د انسان سره د ژوند او تطابق کولو قابلیت نلري، ښائي په کوچنیوالي کې ډېر آموخته او آرام وي لیکن کله چې لوی شي د دوی وحشي طبیعت بېرته را ښکاره شي. سوبان ښائي چې په کوچنیوالي کې په يوه مخصوص ځای کې و اوسېږي لیکن کله چې لوی شي بېرته دښتو او کښتو ته تښتي. د پړانګ چیچیان په کوچنیوالي کې ډېر ښایسته او آرام وي لیکن کله چې لوی شي ډېر خطرناك شي او پر خپل څښتن ناببره حمله کوي.

خوك او چرګ په جنوب شرقي اسیا کې کورني شوي دي. دوی په اول کې د مذهبي مقصدو لپاره لکه په قرباني او خیرات کې حلالېدل. زمونږ د ډېر لیري نیکونو عقیده درلوده چې د چرګ آذان پېریان او شیشکان پېروي او تښتوي. همدارنګه خوګان هم د ځینو عقیدو له مخې اهلي کړل شوه.

داسیا په جنوب غربي سیمو کې د حیوانانو اهلي کول ډېر عملي ښکاري. پسونه، وزې، خره، اوښان او نور مواشي لومړي بلا داته روزل شوي او اهلي شوي دي.

پسونه له درو وحشي نوعو څخه

چې ور پښتانه يې دراوړل نه وروسته په وجود راغلي دي او د غوښې لپاره استعمالېدل. خره له وحشي خرو څخه منځ ته راغلي چې تل د مالونو د وړلو او راوړلو لپاره استعمالېدل.

اوښان، داسې ښکاري چې له خپلې اصلي وحشي نوعې څخه په لږ څه تغير په وجود راغلي دي. اوښ په دښتو او صحراو کې نطاق کولای شي او هغه وخت چې انسان اوښان اهلي کړل په دښتو کې تګ او راتګ آسانه شو او اوښ د لېرې واټنو د تجارت لپاره مهم عامل وګرځېد.

لنډه دا چې د نن ورځې مواشي له دوو وحشي نوعو څخه منځ ته راغلي دي. يوه نوعه يې هغه مختلف ژوي دي له کومو سره چې موږ آشنا يو او بله يې د هند غوايان او بوک لرونکې مواشي دي. د مواشيو په اهلي کېدو سره يو انقلابي اقتصادي اختراع: شيدې، غوړي، پوستکي او وړيه په وجود راغله. شيدې او حبوبات په ګډه د انسان يوه مهمه غذا وګرځېده چې د ژوند لپاره اول ضروري عناصر پکښې موندل

کېږي.

يو بل حيوان چې د انسان په پرمختګ کې د مدنيت وخوا ته لوی رول لوبولی دی آس دی. د آسانو ګلې د يخچالي دورې نه وروسته په اروپا کې خپرې شي او د غوښې لپاره به ښکار کېدل. د قبل التاريخ په ځينو حکاکي اثارو کې آسان ځينې سره ليدل کېږي او داسې ښکاري چې حتی په هغو ورځو کې انسانانو د آسانو په اهلي کولو پيل کړی و. لېکن په دې باره کې چې ايا دوی د سورلۍ کار ځنې اخيست په يقيني ډول معلومات نلرو.

کوم وخت چې د اروپا اقليم تود شو او ځنګلونه پکښې پيدا شول، آسانو چې ځانته پراخه او خلاصه ځمکه غوښته د ختيځ وخوا ته ور وخوځېدل او اسيا ته ولاړل. په دغه ځای کې دی چې آسان په حقيقي ډول د سورلۍ لپاره اهلي کړل شوه.

آسان لومړي اهلي حيوانات و چې د جنګ لپاره استعمال شول که څه هم هنديانو جنګي پيلان درلودل، خو پيلان هېڅ کله اهلي شوي ندي بلکه مطيع او تابع کړه شوي دي.

آسانو د هوارو ځمکو ګرد ته مه کښه کړه چې د خپلو لېرې ګاونډيانو ولېدلو ته ولاړ شي پر دښمن نابېره يرغل او حمله وکړي. يلي او پياده سړي د مخه نږدې چې ځنې ونښتي راګير او اېسار کېږي. که چېرې د دښمنانو غونډونو او جرګو جوړولو سواربان کولای سوای چې د لېرې څخه يرغل پرې وکړي او د دوی غونډه او جرګه ورماته کړي.

يو بل ژوی چې اهلي شوی ګوزن دی. د ګوزن اهلي کول ډېر وروسته منځ ته راغلي دي. هغو وګړو چې د شمالي سړو ملکونو ته ولاړل، هلته يو رنه ذکر شوي ژوو ژوند نشوای کولای نو يې ګوزن اهلي کړ او د مالونو د وړلو او راوړلو لپاره يې استعمالاوه.

لنډه دا چې لومړی اساسي تحول يعنې د افزارو او اور استعمال انسان ته قدرت ورکړ چې خپل محيط تر کنترول لاندې ونيسي او دوهم اساسي تحول يعنې د حبوباتو کرل او د ژويو اهلي کول انسان ته توان ورکړ چې ځانې ژوند غوره کړي او اجتماعي ژوند شروع کړي دي*

ښاغلی «رشاد»

# اشرف الوزراء شاه ولیخان «بامیزی»

بګی خان بویلری «پښتون» په پوپلزو کی بامیزی قبیلې او صالح زي پښې ته منسوب دی صالح زی پښه هغه صالح خان ته منسوبه ده چی د سدوزو د مشر نیکه سدوخان ورور ؤ . د ۱۱۵۰ هـ ق کال را په دیخوا بګی خان په هغه خوراسو نفو پښتنو سردارانو کی چی د نادرشاه په لښکر کی ئې د پښتنو سپاهیانو مشرتوب برغاړه درلود شامل ؤ . په ۱۱۶۰ هـ ق کال چی لوی احمدشاه بابا په کندهار کی د پښتنو په سیاسی مشرتوب وټاکه شو، دی ئې دوزیراعظم په حیث مقرر کړ د اشرف الوزراء په خطاب اود شاه ولیخان په لقب ئې ونمانځه .

د بګی خان پر مهر باندی او مری دا بیت کیندلی ؤ .

در بارهٔ من چون کرم لم یزلی شد　　بګی بودم ونامم بجهان شاه ولی شد

بیانې د «بګی بودم» جملهٔ ځنې وغور ځوله او په دې ډول ئې ترمیم کړ :-

دربارهٔ من چون کرم لم یزلی شد
القاب ز شاهم بجهان شاه ولی شد

ددولت درانیه په پوولسم مخ کی لیکلی دی چی اشرف الوزراء لوی احمدشاه بابا ته بې ساری اخلاص درلود اوخوښ ؤ چی د لوی احمدشاه بابا د بری په لاره کی دخواو بر ځای خپلی وینې وبهوی .

په ۱۱۶۴ هـ ق کال چی لوی احمدشاه بابا دوهمه پلا د نیشاپور، مشهد، او طوس لور ته لښکری وخوځولې او نیشاپور ئې کلابند کړ د نیشاپور حاکم عباسقلی بیات د شاه ولی خان په وسیله د لوی احمدشاه بابا حضور ته د نیشاپور د سپارلو عرض وړاندی کړ لوی احمدشاه بابا چی د دغو ځایو تر مکرری استیلا وروسته هرات ته راستون شو . شاه ولی خان ئې له یوه تنکړه فوج سره د هندوکش او آمو ترمنځ سیمو د نیولو له پاره وګماره دا هم دا کار ترسره کړ او په هره سیمه کی ئې افغانی حاکمان مقرر کړل شاه ولیخان چی تردې سوبې وروسته د بامیان او کابل له لاری کندهار ته راستون شو اعلیحضرت لوی احمدشاه بابا هم په دغو اړدو ورځو کی له هراته کندهارته رارسیدلی ؤ اود اشرف الوزراء شاه ولیخان له فعالیته ځخه ډیر راضی شو .

* تحول دماشین تراختراع اود حرارت دقوې تر کشف تروختو پوری ادامه درلوده چی دریم اساسی تحول منځ ته راغی اود پرشیان په وروسته پیرپو کی پیښ شول . کلتور پراختیا او انکشاف وموند ښارونه ودان شول او فاتحینو لوئی امپراطوری جوړی کړی او بیا بیرته ځنی ونړیدلې . «بای»

په ۱۱۶۵ هـ ق کال چې لوی احمدشاه بابا د لاهور د مغلي حاکم میرمعین الملك د ځپلو له پاره پنجاب ته فوجونه ور ولېږل اشرف الوزراء شاه ولیخان هم ور سره ؤ د دغه کال د دوهمې خور په منځ کې چې د میر معین الملك فوجو د لوی احمدشاه بابا پر لښکرو لاهور ته نژدې یرغل وکړ دی د احمدشاهي فوج په کېڼ غوزي کې ولاړ ؤ او کلکه مقابله ئې وکړله او د دریمې خور په اولمړۍ ورځ چې د میرمعین الملك فوجونه مات شول میرمعین د اشرف الوزراء شاولي خان په وسیله د لوی احمدشاه بابا حضور ته وړاندې کړه شو.

په ۱۱۷۰ هـ ق کال چې لوی احمدشاه بابا هندوستان ته څلرمه پلا ولاړ اشرف الوزراء شاه ولیخان ور سره ؤ او د ۱۱۷۰ هـ ق کال د دریمې خور په درو یشتمه ورځ ئې تر لوی احمدشاه بابا یو مزل د مخه له خپلو لښکرو سره په [باداي] نومي ځای کې چې له ډیلي څخه شپږ میله لیرې ده واړول دلته د ده د فوج او د یوې دستې مرهټو لښکرو چې [انتاجي مانك ایشور] اداره کول وه سره یې مقابله وشوه د غلیم سل میړونه ووژل شول نور ئې په تېښته ولاړل. د دوهمې خور په ۲۷ ورځ د ډیلي د دربار وزیر ناسیاله غازي الدین سهروردي د اشرف الوزراء شاه ولیخان کمپ ته ورغی او ور سره وئې لیدل او موړی غازي الدین د ده په وسیله د لوی احمدشاه بابا په حضور هم مشرف شو او شو ورځې پس د اشراف الوزراء په توسط د ناسیاله غازي الدین څخه د یو کروړو روپو جواهرات او زرو لکو دانو زیاتي اشرفۍ احمدشاهي خزانې ته تحویل شوې. سردار جهانخان چې د متهرا ته تللی و سوځلو او تالاو وروسته اګرې ته وګرځېده شو د لوی احمدشاه بابا له خوا د متهرا په سیمه کې د یاغیانو ایداد شاه ولیخان ته وسپارل شو.

په ۱۱۷۱ هـ ق چې نصیر خان بلوچ په کلات کې د استقلال نغاره وډنګوله لوی احمدشاه بابا یو فوځ د اشرف الوزراء تر مشرتابه لاندې ور واستاوه نصیر خان چې خبر شو بلوچ فوځونه ئې مستنګ ته راوستل مستنګ ته نژدې په فرښنګوز (۱) کلي کې جنګ وشو د اشرف الوزراء فوجونو ماتې وکړه او دیرش میله د جنګ له ځایه تر شا شول مګر ډېر ژر ئې لوی احمدشاه بابا په خپله له کندهاره څخه په مرسته راورسېد او نصیر خان ئې په کلات کې کلابند کړ څه موده پس نصیر خان د اشرف الوزراء په وسیله د لوی احمدشاه بابا حضور ته راغی او عفوه ئې وغوښتله.

په ۱۱۷۳ هـ ق کال چې لوی احمدشاه بابا پنځمه پلا هندوستان ته ولاړ اشرف الوزراء ور سره مل ؤ.

د ۱۱۷۴ هـ ق کال د دوهمې خور په څورلسمه [۱۷۶۰ ع د نومبر ۲۲] د پاني پت په ډاګ کې د سیندهیا فوجونو د اشرف الوزراء پر فوج باندې د شپې ناڅاپه بریښد وکړ د اشرف الوزراء فوجونه ئې په مقابله بوخت ؤ چې نور پښتني فوجونه ئې په مرسته ور ورسېدل او مرهټه ئې وتښتول د پاني پت په تاریخي لوی جنګ کې اشرف الوزراء د احمدشاهي لښکرو په منځ کې له ۱۹ زرو سپاهیانو

---

(۱) د دې ځای نوم یو تېنګن یا فرښنګوود هم ضبط کړی دی.

سره ولاړو د جنګ په شروع
کې مرهټه پرسته، مسلمان افسر
ابراهیم ګاردی چې د کفارو
د فوج په کیڼ غوزي کې
ولاړو د مسلمانانو د فوج پر
ښي غوزي برید وکړ او د حافظ
رحمت خان، دوندي خان،
بربخېر او احمد خان بنګښ
فوجونه ئې له ځایه بېځایه کړه
په دې حمله کې د شاولیخان
د فوج د ښي څنګ صفونه هم
سره مات شول د مرهټو پیشوا
زاده [بسواس] او سپه‌سالار
ویشوا نات بهاو چې دا ولیدل د
اشرف‌الوزراء پر فوج ئې بوره
سخته حمله وکړه پښتنو دا حمله
ونه سهلای شوه او څه تر شا
وشکېدل اشرف‌الوزراء چې
دا حال ولید له آسه کښته شو او
مرګ ئې تر ژوندینه غوره کړ څو
تنه ملګري چې ورسره پاته وو د هغو په
ملګرئ ئې له یوې خوا د مرهټو
کلک مقابله وکړه او له بلې
خوا ئې خپل نیت وبرك فوج
بیرته راغونډ کړ او د مرهټو مخه
ئې ونیوله. یو هندوستاني
مؤرخ وائي: زه په دغه وخت
کې شجاع‌الدوله له خپله فوجه
څخه چې د اشرف‌الوزراء د
فوج کیڼ څنګ ته ولاړو د

اشرف‌الوزراء د حال د معلومولو
له پاره راولېږلم ما ولیدل چې
دی پلی ولاړ دی خپلو افسرانو
ته بدو رد وائي او جنګ ته ئې
لمسوي.

ذکاءالله دهلوي د تاریخ
هندوستان د نهم ترك په ۳۰۸
مخ کې دا مهم زیاته کړې ده چې
اشرف‌الوزراء شاولیخان په دغه
وخت کې شجاع‌الدوله ته سړی
ورولېږه چې مه ګوره پر مرهټو
باندې برید کوه ګوندې ئې
په دې توګه فشار له موږه کم شي
مګر شجاع‌الدوله ئې د مرستې
همت ونه کړ او د زړور ئې د
اوې احمدشاه بابا خپل فوج
(د غلامانو دسته) په مرسته را
ورسېده او مرهټه ئې تر شا کړه
د برات د میاشتې په شروع کې
پاني پت تر سوبې وروسته اشرف
الوزراء شاولیخان له ډېلي څخه
د اوې احمدشاه بابا په امر د
سورجمل جاټ ډېلوار ته دا ګډ
اورته ولاړ په دې لښکر کې د
دوهم عالمګیر کوزنی [زینت
محل] د دوهم شاه عالم پاچا
زوی جوانبخت او د دوهم
عالمګیر زوم میرزا بابر هم
ورسره ملګرو دا فوج ترمتهرا
پورې ولاړ مګر اوې احمدشاه

بابا بیرته ډېلي ته وروغوښت
او افغانستان ته ورسره ولاړ.

په ۱۱۷۵ه‌ق کال چې اوې
احمدشاه بابا شپږمه پلا
هندوستان ته ولاړ اشرف‌
الوزراء ورپسې و او کله چې
اوې احمدشاه بابا له څو تنو
سپرو سره ځان جنډیالی ته
ورساوه اشرف‌الوزراء هم له
درو زرو سپرو سره ماښام ته
پسې ور ورسېد،

او د ۱۱۷۵ه‌ق کال د رجب
په میاشت ئې آته‌زره سپاره
د زرین خان مهمند په ملګری
د سرلاښ فوج پسې حیث په
سیکهانو پسې وځغلول.

[پاته لري]

## پخې خبرې

دا روپائي تمدن اساس جګړه ده
او کوشش، د آسیائي تمدن
اساس کوم شی دی؟ د تسلیم
او انتظار.

[ویکتور برار]

---

د جهاني سولې د بقا د پاره
باید واسونه سره نژدې سي
ته دولتونه.

[انتوني ایدن]

# د علم النفس پېژندنه

[۲]

۳. دغه سبب و چې د علماؤ د ډېره ډله علم النفس په [علم الشعور] سره تعريفوي. او د دوی مقصد له دې څخه دادی چې انسان پوژوندی کائن دی او د دې شعور هم کوی چې دی ژوندی دی او په دې پوهېږی چې ده د ځان سره ځنې غير مادی امور اد راك لري. او هغه هم معنوی امور دی لکه: ادراك، د خوشالی او د د شعور، ميلونه، عواطف، له پوهې څخه اد راوول شی نه ادنی اخيستل، نو ځکه چې موږ پوهېږو چې دغه امور چې دی قوله د شعور په دائره کې داخل دی نو دا ممکنه ده چې د علم النفس تعريف دی په دې سره وسی چې علم الشعور دی.

د علماو دغه ډله د شعور پو نو په نامه يادېږی او دا ډله د نفس د حقيقت او يا د عقل د طبيعت په باره کې څه نه وائی بلکه يوازی د شعور او د ده د مظاهرو پر شاو خوا بانـدی ږغېږی د دوی د دې خبرې دليل دادی چې وائی دا هيڅ فرق نه سره لری چې موږ ووايو چې دغه معنوی امور چې د عقلی امورو په نامه مسمی دی چې يا د هغو کيمياوی انفعالاتو او تغيراتو له اثره څخه دی چې په بدن کې جريان لری او يا په يوه خاصه هستی پوری مربوط دی چې هغه د نفس او يا عقل په نامه نومېږی ځکه موږ په دې کې شك نه لرو چې دغه امور خواص د هستی په دمتی موجود دی لکه موږ نه چې د خپل شعور په وجود کې شك نه‌رالوېږی او د دغه شعور تحليل او د ده هستی د عناصرو څېړنه او د ده د طبيعت پېژندنه نو له د علم النفس موضوع تشکيلوی.

مگر د «فرويـد» او د ده د ملگرو د نظرئې تـر اظهار وروسته نو موږ دی تعريف ته کفايه‌سو او د دې قابليت نه شو وربانه چې ورد ی منل سی ځکه دغه نظريه چې د ده د [لاشعور او باطنی عقل] په وجود اقرار کوی او دا ضروری ده چې بايد د علم النفس په مسائلو کی دغه مسئله هم ځای ورلری ځکه د شعور او يا د ظاهری عقل په سلوك کی د لاشعور او باطنی عقل د پر مهم اثرونه پېژندو لکی دی چې بايد هرو مرو وځېړل شي.

٤. په دغه سبب او علت چې د علم النفس اکثره تعريفـات اړو گړو نگ او ناقص وه او پو داسی تعريف نه پيدا کېدی چې تو موږ دی علم دی په پو علمی طريقه سره معرفی کړی نو د امريکايانو [نوی مکتب] او د دغه مکتب پيروانـو د علم‌ـ النفس د باره دا تعريف غوره کړی چې [علم دراسته السلوك] او دغه مکتب د سلو کيونو او يا مسلکينو په نامه يادېږی او دا هغه څـوك دی چې د شعور وڅېړنې ته په علم النفس کی پو اړی اهميت ايږدی او دوی چې ئې ورد ې خبرې ته وراداره کړه ځينی سببونه ئې دادی:

لومړی دا چې دوی د حیواناتو
د سلوک وڅېړنې ته لوی اهمیت
ورکوي په زمانه بیا د عالي
حیواناتو او دادې دپاره چې
دوی دا انساني غرائزو په څېړنه
و مفیدو حقائقو ته ځان ورسوي
او همداډول د انساني عقل
نطور تر څېړو لاندې سي او دغو
حقائقو ته رسېده په دې ډول سره
ممکن نه دی چې سړی د حیوا-
ناتو شعور بېسي را واخلي بلکه
په دې شان کېږي چې د حیوا-
ناتو سلوک د طبیعي او غیر طبیعي
ظروفو له مخې تر نظر لاندې
ونیسي بله لا دا ده چې حیوان
که څه هم شعور لري خو د دغه
شعور بوواضح او راساً څېړنه
محاله ده ځکه په حیواني شعور
یوازې په خپله حیوان پوهېږي
او دا نه ده ممکنه چې حیوان
خپل شعور و موږ ته بیان کړي
نو ښکاره سوه چې د شعور څېړنه
ممکنه ده او دا هغه یوازنۍ
وسیله ده چې د دغو قیمتي
حقائقو ته سړی رسولای سی .
دوهمه خبره دا ده چې د
کوچنیانو، لویانو، پوهانو، او
لېونیانو د نوو نفسیات باید چې
په علم النفس کې وڅېړل سي او
دا کار بې د سلوک له مطالعې
څخه ممکن نه دی ځکه د
کوچني شعور خو و پوخوالي ته
نه وي رسېدلی او نه له خپله
شعوره څخه په کامل ډول سره
بیان کولای سي او هر څه چې
لېوني دي او یا بل داسې څوک
چې روحي رنځ ورته پېښ وي
او له عادي حاله څخه اوښتی وي
د هغو په خبره بیا اعتماد نه کېږي
او نه ئې د خپل شعور په باره کې
اظهارات د منلو وړ دي .
دریمه دا ده چې هغه نفسي او
باطني ملاحظه چې شعور بون
ئې و نفسي حقائقو ته د رسېدو
په لار کې قابل اعتماد ګڼي
ممکنه نه ده چې له یوه مخه دې
سړی و مني ځکه نواقص لري
او د وقت نه پکښې کېږي رلی
هغه عقل چې ځان ملاحظه کوي
یا به خپل اعمال په داسې حال
کې مطالعه کوي چې فعلاً دي
ور سره مخامخ وي او یا به ئې
وروسته تر حاصلېدو او تېرېدو
په یاد راولي خو په دواړو صورتو
کې ئې ملاحظه او مطالعه ناقصه
ده په اولمړي صورت کې ځکه
نواقص لري ولې چې د عقل،
قواوې په داسې حال کې چې
ځان ئې د عمل په وخت کې تر
ملاحظې لاندې وي او هرو مرو
سره نیت و بیرك دی او په دوو ډولو
ته ویشل کېږي، یو ډول به ئې
مراقبت کوي، او بل ډول چې به
اعمالو بوختې وي تر مراقبت به
لاندې وي او په دې شکل نو دا
دواړه کاره که مراقبت دی او
که عمل په ناقص او غیر طبیعي
ډول سره دي «۱» د دوهم
صورت دلیل دا دی چې د یوې
عقلي حادثې بیان پسله دې څخه
چې حاصله او تېره سي په دقیق
ډول سره نه کېږي ځکه نفسي
جریانات چې دی ژر ژر تغیر
کوي نو دا ډېره مشکله ده چې
یوه حادثه دې پسله تېرېدو څخه
په تفصیل سره ټکی په ټکی
بیان سي. ځلرمه وجه دا ده چې*

---

«۱» هغه نوې تجربې چې د
الماني [بورتسورج] مدرسې
اجرا کړي دي داسې ښئي چې
عقل په خپل ځان کې و دوو
برخو ته نه ویشل کېږي چې
یوه برخه دې عمل کوي او بله
برخه مشاهده، بلکه خبره داسې
ده چې عقل متذبذب کېږي
او له یو کړي به عمل اخته وي
او بل کړي بیا د خپل عمل و
ادراك او مشاهدې ته رجوع
کوي خو د تقسیم نظریه ئې
باطله کړې ده .

* دا وه سړی باطني شعور بل څوك نشي ملاحظه کولای ځکه دا امکان نه لري چې ملاحظه کوونکی دی د هغه حالة شعوره سره یو ځای اتصال پیدا کړي چې تر ملاحظې ئې لاندې وي او همدا رنګه که هغه تر ملاحظې لاندې سړی خپل شعور بیان کړي خو د یوره اعتماد ور نه کېږي که څه هم په بیان کی هم کوونکی وي ځکه خبری چې دی د عقلي اعمالو بیان په دقیق ډول سره نسي تصویر کولای .

دا نو دا خبری چې وسوې داسی نه ده چې د مسلکیو او لاس-ایوی نو یوازی په سلوك بوری بنه ثابتوی او ددې دلیل کېدای هم نه سی چې د علم النفس د مبادیو د استنباط دپاره دی یوازی د سلوك طریقه غوره سی بلکه او مړید او دوهمه فقره چې وه صرف دا ئې ثابتوله چې په غیر عادی حالاتو کی د سلوك طریقه اهمیت لری او له ئې څخه نو دا نه فهمیږی چې د ځان یا د بل ملاحظه تو په عادی حالاتو کی چندانی فائده نه لری هر څه چې څلرمه او پنځمه فقره ده هغه داسی ښکاره کوي چې د نفسیاتو په باب کی که د دریمی فقرې ډول دی او که د څلرمی فقرې خو کفایت نسی کولای او هر ډول ئې نواقص لری اصلی کار دادی چې یو نفسی عالم صرف په ئې نه قائم کېږی چې ځان دی د ځان تر ملاحظې لاندې راولسی بلکه د دغی ملاحظې نتیجه د هغې ملاحظې له نتیجې سره مقابله کوی چې بل څوك ور رسېدلی وی او حقیقت هم دادی چې اکثره بالاهمیته نفسی مبادی په دغه طریقه سره ولاس ته راوستل سوی دی او په راوروسته کی به ئې ناسی هم وګوری بنابر دې نو د علم النفس تعریف په علم السلوك سره همدا رنګه ئې کفایته او قاصر دی ځکه دغه تعریف چې دی د علم النفس د حقیقت یو یوه جزء باندی دلالت کوی او تر له حقیقت ئې نسی تعبیرولای او په علم النفس کی باید چې هرومرو دا دواړه شیان موجود وی . اول : ځان او یا د بل مطالعه د شعور د ملاحظې له لاری . دوهم : په انسان او حیوان کی مطالعه د سلوك له لاری . نو په دې وجه لازمه ده چې دغه دواړه شیان ئې په تعریف کی برخه هم واخلی ، موږ ته اوس دا لته دارا پاته ده چې دوه تعریفه لاندی ذکر کړو مه کنه ده چې له دوی څخه دی و مطلب تعریف ته ور نژدې وګڼل سی .

۵ . او مړی تعریف [علم النفس] یو وصفی POSITIRE علم چې له سلوك او امیالو څخه بحث پکښې کېږي .

۶ - دوهم تعریف : علم النفس یو علم دی چې له سلوك او شعوری اعمالو او یا هغو اعمالو چې شعوری اعمالو ته نژدې پکښ لری او له ژوندیو افرادو څخه صادریږی بحث پکښې کېږی ، که موږ دا دغو دوو تعریفو څخه هغه غوښتی خبری راواخلو بنائی چې د علم النفس داسی تعریف په ور کړو یو بیانی علم دی چې له شعوری اعمالو او امیالو او هغو امورو چې شعوری امورو ته ور نه وی بحث پکښې کېږي ، د ه بیانی کلمې زیاتوب هرو-مرو په دې تعریف کی ضروری دی ځکه د بیانی کلمې معنی دا ته داده چې علم النفس په عقلی اعمالو کی یوازی له دې ناحیې څخه ژغیږی چې دوی څنګه دی نو ګویا صرف بیان

ئې کوي او نه غواړي چې د ښه او بد حکم دې باندې وکړي او نه داراتي چې دا باید وسي دا باید و نه سي ولې چې دا علم لکه علم الاخلاق داسې نه دی چې پر انساني سلوك باندې به دې عبث خبرې چې کوم شی لازم دی چې د کولو دپاره غوره سي . [شعوري اعمال] چې په تعریف کې ذکر شوه ټول هغه اعمال که ارادي که غیر ارادي چې د شعور په دایره کې داخل وي کتیبیاسی ئې او دا شعور او که د انسان وي که د حیوان که د کوچني وي که د لوی که د پرمخ وي که د اپوړ نی . یعني هغه اعمال چې و شعوري اعمالو ته نژدې وي دا ددې دپاره په تعریف کې راوړه سوه چې د علم النفس په مباحثو کې د نفسي تحلیلاتو مهمه موضوع او د لاشعوري یا باطني عقل څېړنه او د نوغ عقل د علاقې مسئله له شعوري عقله سره ټول له یکښې شامل سي .

## په علم النفس کې

### د زغېدو لاري

علم النفس چې کله د طبیعي علومو په داله کې ور ګنېږي او د هغه صفات او ممیزات یا ځان کې پیدا کړي نو حقائقو ته د رسېدو په لار کې د هغو لارې پسې ورا خلي او د هغو د تهذیب او تنظیم چې تر عمومي قوانینو او اصولو لاندې خپل متفرقات راټولوي او سره یو ځای کوي پر یلو باندې یل ایږدي .

هغه اوی کوښښونه چې د رواني پېړیدلو اواتلو څخه فنی علماؤ شروع کړي دي ډېرې ښې نتیجې ئې ورکړي دي او د علم النفس د ترقي په لار کې لوی اثرات ښندلي دي او د طبیعي علومو په منځ کې ئې نوموړی علم و او دي درجې ته رسولی دی موږ وینو چې ورځ په ورځ نوموړی علم پر نورو علومو او فنونو باندې غلبه کوي او د دوی په مباحثو کې له یوې خوا څخه مداخله کوي او له بلې خوا څخه د نورو علومو او فنونو په اثر سره متأثر کېږي او د دوی له حاصلو نتائجو څخه ګټه اخلي دغه سبب دی چې د علم النفس مسائل ئې ډېر کړي دي او مباحث ئې نیت و پرك پسراخ سوي دي او دې درجې ته ئې خبره رسولې ده چې باید هر و مرو علم النفس و څو متعددو فروعاتو ته ووېشل شي . چې د وګړو و حقائقو ته ځان ورسوي او ځکه د رسېدو دپاره د هغو علمي طریقو پیروي کوي لکه نور طبیعي علوم چې ئې په خپلو مباحثو کې تر نظر لاندې نیسي او ځینې له هغو طریقو څخه دا دي :-

۱- د فرضیو فرضول او په دوې کې له منطقي نساجي څخه زغېدل او له هغو څخه نظر ئې په لاس راوستل لکه دا طریقه چې په فلسفه او په هغو علومو کې پالل کېږي چې خاص نظري وي یعني فکري .

۲- په آلاتو او وسایلو سره د کمیت اندازه لګول .

۳- په معیاري ازمویښتو او پوښتنو سره د نوعیت اندازه لګول یعني دا معلومول چې دا څه نوع او ډول عقلي عمل دی او پېښېده ئې څه ډول دی .

۴- ټول له معلومات او مشاهدات راټولول او له هغو څخه هغه علمي قوانین رااېستل چې د یو جمعیت پر ډېرو افرادو باندې تطبیق کېږي .

۵- هغه طریقه چې علم النفس ئې له نورو ټولو علومو څخه راجلا کړی او یوازې دده طریقه ګڼله کېږي چې هغه د باطني تأمل او ذاتي ملاحظې طریقه ده .

«پاته لري»

لیکوونکی: [موریس میترلینګ]

پښتو کوونکی: [ښاغلی م، ع]

# ځینې لیکوال موږ له لوستلو څخه

## خواتوري کوي

ځینې لیکوال په زیاته بیا د ناول یا ډرامو لیکوونکي موږ له لوستلو څخه داسې متنفر کوي چې له ویلو څخه موږ ره راووهي دوی دا نصیر کوي چې که په ډېر دقت د عامو خلکو پست امیال، احساسات او افکار په خپل کتاب یا مقاله کې ځای کړي د دوی د لیکنې ارزښ به زیات شي او خلک به ورانې:- څو نه ښه لوی لیکوال دي چې داسې ښه پست اراپوني افکار او احساسات ني په خپله لیکنه کې ځای

کړي دي او هغو ته ني څه ښه پوښي ور واغوستي دي، حال دا چې داسې نده، انسان اکه څرنګه چې په عادي ژوند کې د یو پست یا احمق سړي سره په تکلیف کېږي په کتاب کې هم نه غواړي چې کښېته ارزو ګاني او اپوني افکار مطالعه کړي. ځینې لیکوال هم دا وائي: چې دا افکار او تمایلات د هنر په چوکاټ کې لرېدلې او ښکلي سوي دي او هنر داسې دی لکه اور چې هر شي پاك کولای سي که څه هم بخ پله هـ ـر څو مره ناولي وي. ولې دوی دا هېر کړي دي چې اور هغه څه پاکولای سي چې د اور په مقابل کې مقاومت ولري ...

دا منم! چې که پ ـ ـوه ناپاکه او ـ ـپنه پاډېره اور ته واچ ـ ـراه ـسي پاکېدای سي خـ ـو ناولي کاغذ که اور ته ورنژدې سي فوراً ني لمنځه وړي او هېڅ ځنې پاته کېدلای نه سي.

دا لیکوال بیا زما په جواب کې وائي: موږ قصداً دغه ډول لیکو چې خلک فساد، متقلب او تبه کاره اشخاص وپېژني او تجربه پیدا کړي.

زه ئې په جواب کې وایم موږ د خلکو د پېژندلو د پاره هېڅ احتیاج نه لرو چې کتاب وو وایو او نر او سه لېدل سوي هم نه دي چې څـ ـوك دي د کتاب په لوستلو [سړي پېژندو نکی] سوي وي.

موږ هر یو که سواد هم ونه لرو د ژوندانه د مقتضیاتو په حکم د سړي پېژندلو حس لرو او

په دي پوهېږو چې ښه سړي څوك دي او بد کوم یو دي او یوه ورځ کافي ده چې په ناسته ولاړه یا تماس سړي وپېژني – و چې دا لا تر ۱۰ کالو مطالعې لا تر تأثیر لري.

په یوه ناول یا لیکنه او مقاله کې چې هر څـ ـو مره مبتذلي خبري ډېـ ـري وي او په زیاته پیمانه پست امیال او احساسات پکښې کار سوي وي عوام د هغه ډېر تعریف او ستاینه کوي او هغه واقعي او طبیعي بولي زه و داسې عامه قضاوت ته هېڅ اهمیت نه ور کوم ځکه د پستو او کښېتو افکارو تکرار او پر هغه قضاوت کښېته کار بولم.

زه وایم ناول، مقاله یا هره لیکنه چې وي باید د خلکو د

په ۱۵ مخ کې

د [نجیب] ترجمه

دهند دویکلي ریویو له اخبار ه څخه

# په کندهار کې د آشوکا فرمان

زموږ پوه هیئت چې دیوان چونګ د ځینو دپیدا کولو په غرض سره دمې د ۲۹ او دجولائي دمیاشتې د ۲۴ نېټې په مابین کې دافغانستان ته سفر وکړ خو سره له دې چې د [illegible] ټکالیفونو د هغه مملکت په جنوبي او جنوب غربي سیمه کې د نوموړو ځینو څرک پیدا نه کړ مګر د آشوکای کبیر د فرمان میندلو چې په آرېک یا سریاني او یوناني ژبه لیکل شوی ؤ زړونه ډېر خوشاله کړه. او بېدې سره د هند او افغان تاریخ لا ښه روښانه شو د دغه فرمان کتیبه د کندهار په زاړه ښار کې چې تاریخي نوم ئې الکزندریه یا اراکوزیا دی د بابر و چهل ځینې ته نژدې د سرېوزې په محل کې ومیندل شوه دې فرمان له هغه تاریخي نظریې سره چې د کندهار نوم ئې له کندهار اڅخه بالهاو وېل ئې چې اراکوزیانو په پنځم قرن کې د افغانیانو له لاسه څخه له مشرقي سیمو څخه ودې ځای ته هجرت وکړ او اصلي ځای ئې ګوندافرز ؤ ښه کومک وکړ.

هیرزفیلد زموږ د هیئت یو غړی عقیده لري چې دا فرمان دېخواني آرمیک یوه برخه ده چې پخوانئ په «ټکسیلا» او دارنتا کې څه یو لګې میندلې شوې او د کوچنیو ډبرو د فرمان په نامه سره یادې شوې دي.



ښاغلی عبدالقدوس «نجیب»

## الف: د کتیبې دیوناني برخې ترجمه.

۱- لس کاله له تاج ګذارۍ څخه د پریادارسین پاچا تېر شوي وه چې وخلګوته ئې رحم او د دیانت اصول ور وښودل.

۲- په دې څخه دمخه کې په سرباندې خلګو دې ډېر متقي پرهېزګاره او پرېالي ولېدي.

۳- بادشاه د خلګو د ژوندانه ازارولو څخه اجتناب وکړ او ماهیګیرانو ښکاریانو ئې له ښکاره څخه منع کړه.

۴- هغو خلګو چې دځان اداره ئې نشوای کولای د دهاطرفه څخه برطرفه شوه.

٥- کوم خلک چې څه سرکښه وه د مورود پلار او د سپین ږیرو مطیع شوه.

٦- په دې نو که سره به وکړي د یوه مسعود ژوند څښتنان شي.

## ب: د گتیبی د آریك

### بسرخی ترجمه

١- لس کاله پس زموږ ستر باچا پربادارسین د حقیقت او رشتیا گلاوی مؤسس شو.

٢- بدی په تولو خلگو کې پر مخ ورکه شوه او دی د بدبختانو د لیستی کولو سبب شو همدغه سبب دی چې اوس د مځکې پر مخ باندې تام امنیت دی.

٣- پسله دې څخه پسه زموږ سردار «تولواك» و حیوانانو ته غذا ورکوله او لېز به ئې وژله نو ځکه تولو خلگو د حیوانانو له وژلو څخه ډډه وکړه حتی د کبانو له ښکاره څخه ئې لاس لاسو نه واخیستل.

٤- هغو خلگو لا چې له بې عقلې ئې له ې کارو څخه لاس نه اخیستې خپل نساوره عملو نه پرېښوله.

٥- د مورود پلار او حتی د سپین ږیرو لا فرمان بردار شوه او

## ځینې لیکوال....

اسوده کړی چې په تدریج سره د عالی او پاکی زندگۍ له پاره استعداد پیدا کړي، ناول یا مقاله باید پلانی بې تربیته ځوان په دې پوه کړي چې که نه شپه ترسهاره د یوې لارې پرسر د یوې پیغلې سره تېره کړي باید ددې وعفت ته زیان ونه رسوي.

مقاله باید پلانی تعلیم یسافته ځلمی په دې پوه کړي چې خواری او مفلسی عیب نه دی ځکه د نړۍ اکثر نوابغ مفلسه تېر سوي دی او هم داسې پوه سی چې دروغ، خطا ایستل، بې عفتي او د دوستانو سره خیانت بد کار دی.

غیر له دې که ناولونه یا مقالې په زرو کلو نه پوره؛ کښته سی قیمت به ئې د یتو تر بازیه پوره نه وی.

---

هر څوك به ئې په تقدیر او قسمت سره ملزم بولله.

٦- قضاوت وپرهېزگارو خلگو ته اشته.

٧- والی چې دین وتولو خلگو ته گټور او فایده رسونکی دی.

## اوستا

### دباختری اریایانو باستانی کتاب

د زردوار یایانو د باستانی مذهب کتاب «اوستا» نومېدی چې نن ئې لېز برخې پاته دی او ډېره برخه ئې له منځه تللې ده.

دا کتاب د هغو اریایانو مقدس کتاب ؤ چې دوی له خپل ابائی ملك باختر څخه اریانا ته هجرت کړی ؤ. ددې کتاب تدوین د تاریخ پوهانو په اتفاق په باختر کې شوی او زردشت ته ئې حواله کوی.

د زردشت په تاریخ کې اختلاف دی او تر ټولو بوه درسته نېټه هغه بولي چې د یونان ستر پوهاند ارسطو ورکړی هغه وائي چې زردشت تر میلاد د ٧٤ پېړی د مخه اوسېدی.

دا کتاب چې ایا د غو مرو سرود و مجموعه ده یوروپی تاریخی لیکونکی پیونس ده رمیوس له کتاب څخه چې په لمړۍ میلادی پېړۍ کې لیکل شوی نقل کوی چې اوستا دوه ملیونه شعرونه درلوده.

مسعودی عربی مورخ په خپل کتاب مروج الذهب کې لیکی چې دا کتاب د ١٢ زرو غویو پر پوستو ولیکل شو او شاوخوا ته ولېږل شو.

کله چې باختری مځکې د سکندر تر یرغل لاندې وتړل شوې هغه ددې کتاب او یه برخه وسوځله.

یو انگلیسی پوهاند وېسټ وائي چې د دغه کتاب تول له ٣٤٥٧٠٠ کلمې درلودې چې اوس ئې ٨٣٠٠٠ کلمې پاته دی ددې کتاب او د هغه د مذهب پیروان تر اوسه سته او د باختری اریایانو باستانی مذهب هم زردشتی ؤ.

# (تطبيقي تاريخ)

بنا غلی «نوميالی»

په هر تعريف چې «تاريخ» راواخيستل سي خو دا خبره پكښې ځائيږي چې و دوو اقسامو ته ئې سړی وويشي :-

يو «بياني تاريخ» بل «تطبيقي تاريخ».

بياني تاريخ البته هغه دی چې ټولو واقعات ئې پوازې د بيان په احاطه كې ژوندي وي او حوادث ئې صرف د ليكو په غيږ كې خوندي وي. دا ډول تاريخ په كتابو كې راپالل كيږي او د لوستلو له لاري څخه معلومات پكښې حاصليږي. تر كمې اندازې چې د حقيقت او خطاء پوښتنه په «بياني تاريخ» اړه لري او په جواب كې ئې ويل كيدلای سي چې ليكنه خو لومړی د واقعاتو او حوادثو له پوره بيانه څخه تر ډيره حده عاجزه ده. بله دا چې هر تاريخ ليكونكی په خپلو حياتي او اجتماعي مرحلو كې بيل بيل احساسات لري او ډير لږ ليكونكي به وي چې په تاريخي مسائلو كې واقعات په حقيقي شكل معرفي كړای سي ځكه اوس مرو به يا له يوې تاريخي واقعې څخه نفرت لري يا بله له

يوې تاريخي حادثې سره محبت لري او په دواړو صورتو كې ئې خپل شخصي احساسات په هره مرحله كې چې وي په ارادي يا غيرارادي ډول ځني پكښې داخليږي. مهمه خو لا دا ده چې بياني تاريخ ته اكثره د ټولنو د مقتدرو طبقاتو تر نفوذ لاندې د دوی د سياسي خوښې سره سم تصنيف كيږي او له دې جمله نور كوټه عوامل هم شته چې د داسې ټولو دلائلو په رڼا كې دا پوښتنه وسړی ته ځان ته پيدا كوي چې آيا بياني تاريخ به تر كمې اندازې حقيقت لري ؟

په دې سلسله كې دا خبره د اهميت وړ ده چې د بياني تاريخ حقيقت او خطاء «نسبت د حادثې تر واقعيت» په خپله د تاريخ لوستونكي له باوره سره ډيره اړه لري ځكه كه څوك خوش باوره وي او غواړي چې تر ده د مخه تاريخي جريانات صرف

د كتابو له تورو څخه تحصيل كړي نو ښائي چې په تاريخ كې خپل خوښ مضامين ثابت حقائق وګڼي او د مرګ تر ساعته په خوشاله واوسي. خو كه څوك بيا داسې نه وي نو ممكنه ده چې فيصله به ئې هم داسې نه وي. په دې اساس نو بياني تاريخ يو شكل دی او د رشتيا او دروغ حكم هم د يو شكل په اندازه قبلولای سي.

تطبيقي تاريخ هغه دی چې د هرچا له موجوده جريانه څخه معلوميږي. هر ولس چې په هر ملك كې وكتل سي نو د هغه د ژوند له ثقافتي، اجتماعي، ادبي او فلسفي جريانانو څخه چې هلته د سترګو په وړاندې شروع وي، دا نتيجه راوتلای سي چې د دې ولس د خلكو تر مخه څنګه خلك له څنګه واقعاتو سره تېر سوي دي، ځكه د هرچا موجوده وضعيت چې وليدل سي

نو خود بخود به دغو د تاریخ حقیقي وضعیت معرفي کولای سي او به دې سړي پوهېږي چې دا د پېړیو پېړیو جریان دی چې اوس په دغه موجود شکل د غوخلکو په ژوند کې تطبیق سوی دی.

په تطبیقي تاریخ کې هیڅ د خطاء ځای نسته او نه ئې څرك د غلطي او صحت په منځ کې مشتبه کېږي ځکه د ژوند د جاري جریان له خپله کوره څخه نیولي بیا تر هره ځایه پورې چې سړی وغواړي په مثبت ډول ئې مطالعه کولای سي. او دغه مطالعه نو د تاریخ ټول جریان او تللي واقعات په ښه ترتیب سره روښانه کولای سي ولي چې هر جاري ژوند د خپل تاریخ واقعي نتیجه بلله کېږي او د اجتماعیاتو په باب کې دا ډېره ښکاره خبره وبلل سوېده چې نن د پرون نتیجه او د سبا مقدمه ګڼله کېږي.

که د تللي حوادثو په باب کې صرف د بیاني تاریخ پر بیانو اکتفاء وکړو نو ویلای سو چې په ساده ټکلو مو اکتفاء کړېده او په داسې ټکلو کې خو نو داړې هر ولس تر بل ځان کم نه بولي او که چېرې د کمبود احساس وکړي نو دستي په دستي ئې د بښو کتابو په لیکلو او د کوچنیو ټکلو په غزولو سره تلافي کوي او په دې ترتیب نو د دنیا پوه پانه ملت تر بوډېر مترقي ولس خپل ځان اوډا بسولای سي.

لېکن که د تاریخ ملاحظه له حاضرو جریانانو څخه پسې وراخلو نو دنیا او د دنیا حوادث لکه څنګه چې راغلي دي په خپلو ذاتي اشکالو کې ئې تحلیلولای سو. په دغه منظور به زمونږ پوهوه اندېوال اکثره وېله:—

«زما تر تاریخ حاضر جریان ډېر خوښ دی ځکه په حاضرو واقعاتو کې، چې اړو هرو د خپل تاریخ واقعي نتائج دي عالم و جاهل، قوي و ضعیف، مدني و بدوي، ناقص و کامل او نر و ښځه ډېر ښه سره معلوم دي».

## ګټوره خبره

که په هومره پیسو چې خلک ئې په جنګ کې لګوي، ښځکه وېلو ول شي، ډېره ارزانه به وي. نسبت و هغې ښځکې ته چې د جنګ او وېښې توپو او په وسیله لاس ته راوستل کېږي. د.....ه

پېغله نجیبه [نژند]

## پتنګ او ډېوه

هلته لیرې د دښت په یو ګوټ کې د څو قبرو نو پرسر باندې ځینې وړې راشنې شو یدی. د شپې په تاریکه کې چې فضا له تیارې څخه ډکه شي، د دغو درخو او قبرو نوو خواته د خلکو ایز ګذر کېږي او له دار نه څوك نسي ور نژدې کېدای. لېکن د دغه هول انګېزه عالم نه چې شاو خوائې په ظلمت او چو ښتیا احاطه شوی وی یو نابېژندونکی شبح په نیمه شپه کې ورځي لمړی پر ټولو قبرو نو طواف وکړي او بیا په کراري او احتیاط سره پر منځني مزار باندې لګېدلې ډېوه کښېږدي او ورځني لیرې شي..

د لته پراخ د دښت او د ډېوه باتېږي د شمع کمزوري وړانګې هري خواته خپرېږي، او هسکېږلي پتنګ چې ټول عمر ئې سترګې د محبوب د لیدو لپاره کږې نیولې وې، په ډېر تلوار او ناآرامۍ سره د شوق په الوتلو پیل کوي..

راځي څو د مینې راز د ډېوې سره ووائي. مګر د دې ډېوې جمال او بلوشي دومره افېزه باندې کوي چې دېونوانۍ په حالت ځان شغلو ته ور ځوي خو ئې وزرونه وسوځي او هستي ئې دیار د مظالمو په وجه برباد سي.



مرحوم رحمت الله بابا

# د حميد پـــــــر غزل

## د مرحوم

## (رحمت الله بابا مخمس)

د تن خــاوره مې د غــم لــه رطوبته
ازلي ده خيشته ســوې له قسمته
بلا چــاره نــه لــرم بيــله محنــته
منت کړم د خوبانو اوس په نغته
د هر چا د ظلم بار وړم بې منته

په خاطر باندې مې اوري کاڼي، بوټي
تل تندي د اغيار وېنم غوټي غوټي
د راحت په خوب مې نه کړې سترګې پټې
د ښکاري په څېر جار وزم ترهر بوټي
د رمته وړغ د بوه ښکار د محبته

که ئې مالګې وي برني په جراحت کې
لا به ښه تر بې تنګيه وي په راحت کې
تل لــره دا تقاضـا پـه حرکت کې
په سرو وينو کې لت پت ښه ئې په پټ کې
نه د سرو زرو پر تخت باندې بې بخته

تل ساته زړونه د ژبې له بـد نېښه
ترخه زهر د حلوا په څېر مه زېېښه

لکه سور لعل به سپېرو خاورو کی برېښه
د کمال کمبه به هله شی دربېښه
که دی لار د کمینو نه کړه غلطه

غواړه یار له ماورا په بې نیازی کی
په هیڅ وخت نه موندل کېږی په بازی کی
که هوا اری په ښه چاره سازی کی
طلبه سر فرازی په سرکوزی کی
راکوزېږی په هغو کی همای ښکته

چی په لوړه تقاضا پسې ئې تلله دی
هغه خلک پوهېدلی نه دی څه دی ؟
خودبینی تورو تیارو نیولی نه دی
مرتب و هر مطلب ته پېژانده دی
بیابه لاس لره رانه شی فراغته

شاګرد اوسه د رب شان معظم ته
د اکرام لقب ئې ورکړو آدم ته
فرشتې ئې په سجده کړی محترم ته
ښه دزړه په سترګو ګوره ځیرشه و عالم ته
کوم صاحب دی صاحب شوی بې خدمته

هغه چا چه کړی څرګندی خپلی رائی
د عنوان په معنی خپل ځانو نه ستائی
بېهوده عالم پسر خپلو لارو بیائی
چی ناصح په ترک دعشق درته څه وائی
و دوزخ ته دی رابائی له جنته

چی هرکام اخلی ایږدي ئې په خطر کی
د ژوندون لمر دی سو ژړ په مازدیګر کی
نه لاړ ئې «رحمت الله» په خپل دفتر کی
د اشنای دمحبت په اوی سفر کی
د «حمید» دننه دی پېټی سوی هورته

اجمل خټک د پښتونستان نومیالی شاعر په خپل دې شعر کې د پښتنو د بدبختۍ حالات ډېر ښه تصویر کړي دي.

## (زه هم ځلمی یم)

زه هم شاعر یم د ځـلا د ښکلي سپیني غاړې سره
د اوښکېن په تال خپل فکر زنګولی شمه
زه هم فنکار یم د چا نورو خمارو سترګو کښې
د پیغلتوب شراب بې جام و کاسو څښلی شمه

* * * *

زه هم د تورو ګورو زلفو عنبري سورو کښې
د توي حسن په باغچه ځان ورولی شمه
زه هم د ګرمو، پستو شونډو انګوري پیالو کښې
ځان نه د عشق آب حیات نیسار ولی شمه

* * * *

زه هم ځلمی یم لېونی زړه مې مستي غواړي
په مرمرینو لېچو خوب د چا سکښې غواړي

زه هم د غوښې زړه لرم سینه کښې کاڼی نه دی
رانه ښایست غواړي، مستي غواړي، خندل غواړي
د زلفو څو کو سره لوبې غواړي، سینه غواړي
ملال بانه، خوږي سترګې، مره کتل غواړي

* * * *

چې د مسکـز خندا د پیغلو انګو، وویني
زما زړه هم ورته بې صبره پسخېدل شروع کړي
چې تر بانه لاندې کاږه د خیال کاته وویني
زما کوګل کښې هم څه پټ پټ نخښېدل شروع کړي

زما زړه هم د مینې ډک دی مینتوب غواړی
ژوندون به خوا کښې د بې کچه بیغلتوب غواړی

## خو

ولې آشنا دا هر څه خیال وګڼه خوب وګڼه
خدای پیژنو که دې ژړه بو لحظه اوزګار پدلې شمه
داخو مستې ده ، خوشحالې ده او خندا هوس دی
والله که زه خو هغه سان هم ناخستلی شمه

* * * *

زما د خیال په ځلمیتوب ګوټی لګیادی خوری ئې
قسم که زه خو د نیمګړی ژوند په خوندبوه شومه
د حیات وینه مې څربې څربې ژوری او ځښې
قرآن که زه خو ددې زبست روزګار په بندپوه شومه

* * * *

حسن به څه کړم چې زړګی به خوار و خوار لرمه
مینه به څه کړم چې ژوند به ارزو بار لرمه
چې مې د مور د سر پوړنی لا تار تار پروت وی
زه به د مستو او پټو خربسو نه څه وینم
چې مې د خور سر سرتور دی د ظالم دلاسه
زه به د نورو پلو کو «۱» خوبونه څه وینم

* * * *

چې رانه چار چاپیره ټول ماحول سلګی سلګی وی .
وایه د سرو شونډو خندا بانډی به څه پوه شمه
چې خپل کرلی فضل ټول رانه ازغی ازغی کړی
د بل د ګلو په موسکا بانډی به څه پوه شمه

* * * *

چې مې نیاز بین بچی د لوږی مری زه ګورم ورته
ملګرو ! څنګه به د مینې خرمستې وکړمه

---

«۱» زلفې .

ښاغلی گل پاچا «الفت»

# ستا د پاره

ای زما د زړگي سر د سترگو توره
د بهار وږمه تاوېږي ستا له گوره

دا جهان بهار ښايسته کړ ستا دپاره
نه له خپل قدره خبر نه ئې هرگوره

که اسمان او که دا مځکه که هوا ده
که دلبر او د سپوږمۍ سپينه رڼا ده

دغه واړه خدای پيدا کړ ستا دپاره
دنيا ټوله ستا د دوه سترگو بها ده

گلو ځان ښايسته کړی ان زمان دی
ستا دپاره پيدا شوی دا جهان دی

هر شی غواړی چی مقبول شي ستا حضور کی
دلاله به زړه کی هم دغه ارمان دی

---

چی زما گټه بل خوری او ما د لوږی وژنی
داسی قصاب نظام کښی څنگه خوشالی وکړمه

* * * *

چی سړيتوب به کښی تللی شی دزړو به نرخ
ملگرو! طمع تري دلته انسانيت وکړمه؟

چی به کښی حسن و محبت هم به ليلام خرڅيږی
سړو! هغه بازار کښي عشق د کرم الفت وکړمه؟

* * * *

تاسو خو عشق وائی د ژوندنه هم بېزار ناست يم
هر څه چی کيږی بوي چيغی ته تيار ناست يم

[ د غيرت چيغه ]

ذ کر د زرغون خان جنت مکان چې په قوم نورزی ؤ روایت کا:-
دوست محمد کاکړ چې په خپل کتاب «غرغښت نامه» کې کښلی دی چې: زرغون خان د نوزاد نورزی ؤ او په کال ۸۹۱ سنه هجری مبارك ولاد هرات ته، او له هغه ځائی په عراق او خراسان سورو کا او د اوزبکو په جنګو کې زرغون ښکاره کړه ښه مړانه او غیرت، چې شیبانی خان سیستان ته ورسید او زرغون خان الغه سره جنګونه و کړل چې د اوزبکو لښکر ډیر ومړل . دوست محمد کاکړ هسې نقل کا: چې په سنه ۹۱۲ هجری زه ولاړم هرات ته، په کجران کې می د ملا ایوب تیمنی څخه د زرغون خان د غزلو او شعرو، دیوان ولید، چې اوراق ئې ؤ ډیره شه پر دري سوه . هم د دوست محمد کاکړ روایت دی چې: زرغون ډیر ضعیف سو، او په سنه ۹۲۱ هجری په دیراوت کې وفات سو، دوست محمد کاکړ پخپله «غرغښت نامه» کې دا لاندی دوه بخ چې مثنوی د ساقی نامې دی، ده له دیوانه دا اشعارو زا نقل کړی .

# مثنوی ساقی نامه

ساقی پا څه پیاله راکړه — مرور بهار هسې پخلا کړه
او په توئی په لښو کړه — اورمې هر په ي او بو کړه
پسرلی شو غنچه ګل کا — زلفی تاوی د سنبل کا
بلبلان شورو فغان کا — کربدن په ګلستان کا
زاهد وزی صومعې څخه — شراب بیری میخانې څخه
هر سری پهمیو مست دی — دې بهار کې ګلپرست دی
په راغو کې سري لمبي دی — د غټولو ننداري دی
جهان نول سورا و زرغون شو — وچ راغ، ښکلی ګلګون شو
سری نول شورو شغب کا — پسارانې کاندی طلب کا
بهار وخت د بارانې دی — ښه موسم د پیمانې دی
نو ساقی پاڅه بهار دی — نن ژوندون سبا رفتار دی

دنیا پانه موږ به ځو نه
نورو خاورو کې به یو نه

پیمانه ډکه له مې کړه
بزم نود به پیاپي کړه

چې بېودم سمه آزاد
ناښاد زړه مې سینه ښاد

ساقي پاخه وخت د ګل دی
په جوشش کې خم د مل دی

وخت د میو د وېشو دی
د پیالو د ډکېدو دی

هغه څوك اوس د پېغور دی
چې ئې جام نش ونسکور دی

مستان ګرزي په باغو کې
مستي کاندي په راغو کې

لاس په لاس دي یاراني کا
یو په بل نازو نخرې کا

مجنون وصل له لیلا دی
د جمال په تماشا دی

نه غمجن سته نه بېلتون سته
نه مهجور نه ځګرخون سته

نن نا وګـرزمه راسه
ساقي یو ګړی پخلاسه

ماته جام دربل ولوررا
چې یو نش سي ډك ئې نور را

اورمې بل د زړه په کور کړه
له هرچا هرڅه ئې نور کړه

چې بل څه نه وي الفت وي
نـوله مهر و محبت وي

تول اخلاص وي او صفا وي
تیاره ورکه سي رڼا وي

له زړه کم غش او دغل سي
جهان تول له ګل، او مل سي

ساقي ستا مهر مطلوب دی
نو بهار څکه مرغوب دی

کلا ستا لور، پېرزو نه وي
نو بهار به په څه ښه وي؟

خوند به نه کار ننګ د ګلو
بې مستیو بې له ملو

نه به بزم په شور نود سي
نه نغمې نه به سرود سي

جام به نش د آرزو سي
ورك به مهر او پېرزو سي

نو ساقي پاخه بهار دی
بزم تا له امیدوار دی

یاران ناست سترګي څلور دي
ستا د جام په امید نور دی

نه هم راسه عنایت کړه
بزم نود د محبت کړه

له سرو ملو څخه ډك جام کړه
د یارانو ئې انعام کړه

چې سود بزم په مې نود سي
د رندانو غوږو سرود سي

د جهان و برو و غم هېر کا
بودم ښه په عشرت نېر کا

چې په مخ کې مو بېلتون دی
له جهانه سبا بېون دی

«د له بقي خزانې څخه»

بشاغلي عبدالحی
«حبيبی»

## کره کتنه

# شال او بولان

د کندهار پښتانه يو قصه لري چې د شال نوم د احمدشاه بابا ابدالي په زمانه کې ايښود شوى دى . مګر دا خبره تاريخي سند نلري بلکه شال له پخوا زرو کالو څخه د دغې او سنې کوټې نوم وو او د پښين وادي تر اسلام دمخه هم په تاريخ کې شهرت درلود او زما په خيال خو د بولان نوم هم ډېر پخوانى دى .

د اسلامي دورې د جغرافيانو دغه ځکه چې له مستنګ ترسيوي پورته ده د «والشتان يا والشستان» په نامه ياده کړېده [ وګورئ د يعقوبي کتاب البلدان ۲۸۱ مخ او د البيرونى قانون مسعودى او حدود العالم ۶۴ مخ، ابو عبدالله محمد بن احمد مقدسي پخپل کتاب احسن التقاسيم کې ۴۹ مخ، د والشتان ښارونه ايشين (پښين) اسپنجه، مستنګ، شال، سکيره، سيوه (سبي) بولي او بيا په ۲۹۷ مخ کې همدغه نومونه مکرر د اوړي. دغه مؤرخ په ۲۷۵ه کال کې خپل کتاب تاليف کړېدى ] نو داسې ځيني معلوميږي چې پښين، مستنګ، شال، سيوې او اسفجر زر کاله پخوا هم په دغو نومو موجود وه، او جغرافيه والو پېژندله دا عربي مؤرخ يو ګرزندوى سړى وو، او دمغه وخت اکثر اسلامي ملکونه ده ليدلي وو، نو ځکه دده خبره سند ده .

هتورام پخپل کتاب تاريخ بلوچستان طبع لاهور ۱۹۰۷ع ۶۲۲ مخ کې داسې ليکي :- چې دغه علاقه احمدشاه دراني د بلوڅو مير نصير خان مور ته ديوډنى (شال) په ډول خلعت ور کړي وه، مګر دا خبره غلطه ده ولې چې زر کاله دمخه همدغه شال موجود وو، او عين د احمدشاه ابدالي په زمانه کې همدغه ځاى شال بلل کېدى چې د کاسي قوم کلاوى دلته وي په دغه کتاب کې د مير نصير خان يو فرمان دار باب يوسف خان او دولت خان او بادين خان کاسي ملکانو په نامه سته چې په ۱۱۵۲ه کال د محرم په ۱۱ ليکل شوى دى . بل د احمدشاه ابدالي فرمان دى چې تاريخ ئې د ۱۱۵۴ه کال د صفر ۱۵ «؟» دى ۶۲۴ مخ ، مګر دا دواړي سنې غلطي ښکاري ځکه چې د نصير خان تخت نشيني ۱۱۶۴ه او د احمدشاه جلوس ۱۱۶۰ه کال د شوال مياشت دى او ممکنه نه ده چې لس، دوولس کاله تر پاچهي دمخه د دوى فرمانونه ليکل شوي وي په دغو دواړو فرمانو کې دغه ځکه د شال په نامه ياده سوې ده نو ځکه

زه وایم چې دا نوم پدغو وختو کې هم مشهور وو؛ او نوی ئې دی او کندهاریان تر اوسه هم د کوټې ته هم سوه والا شالکوټیان بولي. کوټ د پښتو قدیمه کلمه او معنی ئې «کلا» ده او شالکوټ یعنی د شال کلا.

اما د بولان نوم هم قدیم ښکاري که څه هم د قدیمې جغرافیا په کتابو کې ما دا نوم نه دی لیدلی مګر داسې ښکاري چې د سلطان محمود او مسعود تر زمانې د مخه ۵۰۰ هـ هم دا نوم یعنې تر اوس زر کاله مخکې هم بولان مشهور ؤ. د غزنوي دربار لوی مورخ ابوالفضل محمد بیهقي لیکي: چې د بست د ښار لوی قاضي ابوالحسن بولاني او بوبکر د ده زوی په علم او تقوی ډېر مشهور ؤ، او سلطان مسعود دغو بولانیانو ته په درنه سترګه کتل. وائي چې سلطان محمود د هندوستان بتان مات کړل او سره زر ئې په کڅوړو کې راوړل یو هره کڅوړه کې زر زر مثقاله سره زر ؤ، یو وخت سلطان مسعود خبر شو چې د بست «د هلمند د غاړې» قاضي بولاني او ده زوی بوبکر ډېر مفلسان دي او له چا څخه هیڅ نه اخلي نو سلطان وویل: دغه د زرو کڅوړې چې د غنیمت حلال مال دی یوه قاضي بولاني او بله ده زوی ته ور کړه مګر قاضي بولاني وویل: دا زر چې سلطان محمود له بتخانو څخه په زور کټلي دي او راوړي ئې دي، او ما ته نه ده معلومه چې هغه غزا دې پر سنت نبوي «ص» برابره وي که نه؟ نو دا زر څنګه واخلم؟ سلطان ور ته وویل: که ئې نه اخلې، خپلو شاګردانو او نورو بېوزلانو ته ئې ور که! بولاني وویل: دا زر د بل چا دي او بل څوک به ئې اخلي تر دې منځ زه ولې ځان په ګیر کړم چې په قیامت به ئې جواب وایم بیا نو سلطان هغه زر د بولاني قاضي و زوی بوبکر ته ور کړه خو هغه وویل: زه هم د دې سړي زوی یم، له ده څخه مې علم زده کړی دی. دا زر نه اخلم خپله یوه ګوله وچه ډوډۍ مې بس ده».

سلطان د بولانیانو له دې زهد او تقوا څخه ډېر خوښ شو او وې ویل: «خدای دې تل دا بولان له بدو سترګو وساتي»

د تاریخ بیهقي ۶۲۳ مخ د تهران چاپ.

له دغو تاریخي سندو څخه ښکاري چې شال او بولان دواړه پخواني نومونه دي او دا ځایونه زر کاله د مخه هم په دغو نومو یادېده، او بولانیان د سلطان محمود د زمانې په پایتخت بست کې د شرع قاضیان ؤ، او د دوی علم او تقوا مشهور وه چې معاصر مورخ بیهقي ئې او دغه قصه له خپلې مشاهدې څخه لیکلې ده.

## د خپل مطلب ښکاره کول په ډېر لنډ ډول

ویکتورهوګو د خپل مشهور کتاب «بېنوایان» د خپرونکي ته یو کاغذ ور واستاوه چې په هغه کې یوازې دا سوالیه علامه [؟] ور ته لیکل سوې وه هغه ئې هم جواب په دغسې لنډ ډول ور کې چې هغه دا یوه د تعجب علامه [!] وه او ویکتور هوګو ته ئې ور واستول.

نو ویلای سو چې تر دې په لنډه سوال و جواب او د مطالبو ادا بل چا نه وي لیکلی.

مشاهیر

لیکونکی: ډیل کارنګی
مترجم: ښاغلی [غروال]

# کریستف کلمب
## د امریکا کاشف



هر کال د اکتوبر په ۱۲ امریکایان د یوې مهمې تاریخي حادثې جشن نیسي، دا حادثه د کریستف کلمب په واسطه د امریکا کشف دی اما د توجه وړ موضوع دا ده چې کریستف کلمب د اکتوبر پر ۱۲ امریکا نه ده کشف کړې بلکه د اکتوبر په ۲۳ دا اوی کشف عملي شوی دی هغه تقویم چې نن یې موږ استعمالوو د پاپ (ګریګورس) تقویم دی خو حال دا دی چې کریستف کلمب د هغه شخصه هیڅ خبر نه ؤ، ځکه دا تقویم دده تر مرګ سل کاله وروسته راووتی هغه خلک چې په امریکا کې اوسېدل د ۱۷۵۲ کال څخه یې ددې تقویم په استعمال شروع وکړه او کله چې یې بدې کار شروع وکړه ناچاره یې تقویم یوولس ورځې مخ ته ولاړې او بنا پر دې کلمب د اکتوبر په ۱۲ امریکا نه ده کشف کړې بلکه د هغې میاشتې په ۲۳ د امریکا پر کشف موفق شوی دی. کریستف کلمب په ځوانۍ کې د یوې دلې غلو کښتۍ ته داخل شو په هغه وخت کې دریابي غلا بده نه ایسېدله او هرې اصیلې کورنۍ خپل هلکان د روزنې له پاره د غلو کښتیو ته سپارل په دې کښتیو کې ژوند په ځوانانو کې پر خپل نفس د اعتماد حس تقویه کاوه.

کریستف کلمب په کوچنیوالي د تحصیل په وخت کې د «فیثاغورث» یو کتاب لوستی ؤ او دې نتیجې ته رسېدلی ؤ چې مځکه ګرده ده او تر دې وروسته په دې باره کې په فکر کې لوېدلی ؤ. او همېشه به یې دا فکر کاوه چې که مځکه ګرده وي او باید هندوستان ته د بلې لارې هم سړی ور سېږي او دا خیال یې کاوه چې که پر دې کار موفق شي بیا نو چې خورا ډېر ثروت به په لاس راوړي. دده استادانو دا احمقانه فکر باله او باندې خندل یې، هو! دې احمق ځوان غوښتل چې هندوستان ته چې په ختیځ کې پروت دی د لوېدیځ له خوا لار برابره کړي.

کلمب په داسې حال کې چې مخارج به ئې بل چا پر اوږه واخیستل پـوره ۱۷ کاله کوښښ وکړ او د خورا ډېرو ماتو او بدبختیو سره مخامخ شو آخر په مایوسۍ اخته شو او ددې له پاره تیار شو چې د خپل دې فکر څخه صرف نظر وکړي او وروسته دا فکر لا هم ورولاړ پدې چې کلیسا ته ولاړ شي او خپل باقیمانده عمر هلته تېر کړي .

کلمب په هغه وخت کې بنځروس کلو ته لاړ او رسېدلی امادو مره زهیر شوی ؤ چې زور ئې نه درلود او د سره وښتان ئې لکه سپینه واوره برېښېدل .

په دې کې پاپ د هسپانیا ملکه ایزابل د کلمب سره مرستې ته تشویق کړه . هغې هم ۶۵ دالره کلمب ته ور ولېږل او خپل حضور ته ئې ور وغوښت کلمب چې خورا مفلس ؤ په هغو پیسو ئې یوه جوړه کالی او یو آس رانیوی او ددې له پاره چې د لوړې مرتبې د هغې لارې په منځ کې چې ئې ملکې ته ئې ځان را رساوه فقر ئې کـاوه .

ملکې هغه کښتۍ چې کلمب احتیاج ورته درلود ور برابرې کړې اما د کښتیو له پاره د کاریګرو پیدا کول سخت کار ؤ ځکه نو له خلک ددې سفر څخه ډېرېدل ، او ځکه کلمب بدې وخت کې یوه ښه چاره وکړه ، هغه دا چې د بندیخانې څخه ئې بندیان را وایستل او هغو ته ئې خورا ډېرې وعدې ورکړې او ځینې ئې په زوره په کښتیو کې وغورځول او خپل نور کار ونه ئې تر له خلاص کړه . د ۱۴۹۲ کال د جمعې د ورځې سهار ؤ چې د ۳ کښتیو سره چې ۸۸ تنه پکښې سپاره وه سفر ته ئې شروع وکړه هغه خلک چې کلمب و نوی قارې ته د ځان سره رهي کړي وه د بې شمېره فلاکتو سره مخامخ شوه او ددې او مرېې دالی خلک تر له بو میانو مره کړه ، ددوهمې دالی مشر د کلمب سره داسې بد ورده شو چې د هیڅ ډول تاوان څخه ئې د کلمب په نسبت ډډه نه کوله څو بالاخره ئې په ځنځیر وتړی او هسپانیا ته ئې را ولېږی که څه هم کلمب و هسپانیا ته د رسېدلو سره سم د بندۀ ایله شو اما دې حوادثو په روحي لحاظ دی ډېر خراب کړ کلمب په شپېته کلنۍ کې مړ شو او هیڅوک ئې د مرګه خبر نه شوه او دده د جنازې مراسم هم هیڅ چا پر ځای نه کړه . کلمب د کیوبا په مرکز هاوانا کې ښخ دی .

«مترجم»

کلمب په یوه داسې حجره کې د دنیا څخه سترګې پټې کړې چې هیڅ فرش پکښې هوار نه ؤ د حجرې پر شا وخوا او دده پر لاس و پښو پنډ ځنځیران را بېچل شوی وه .

کریستف کلمب د نړۍ په تاریخ کې د یوې لوئې حادثې قهرمان ؤ اما دې قهرمانۍ دده هیڅ ګټه ونه کړه ، ځکه دی پدې پر ثروت پسې رهي ؤ حال دا چې په فقر او لوږه کې مړ شو . و کلمب ته وعده ورکول شوی وه چې دریاب سالار او د هندوستان نائب السلطنه به ئې کړي . اما دا عنوانونه هیڅ ورته نه کول شوه حتی هغه قاره چې ده کشف کړی وه دده نوم هم پرې باد نه شو او دده کشف شوی قاره د یو بل نقشه کښونکی چې «آمریکووسپوس» نومېدی په نامه یاده شوه او

«په ۳۰ مخ کې»

یوه ادبي ضیاع

# مرحوم محمدعثمان «پښتون» وفات سو

څو ورځې دمخه محمدعثمان پښتون د کندهار دپښتو ادبي انجمن پخواني رئیس او د هغه وخت د پښتو مجلې چلوونکی چې دانه ئې په «منشي محمدعثمان» سره شهرت درلود وفات سو، مرحوم



محمدعثمان پښتون دپښتو ژبې یو مین او ددې ځای دپخو لیکوالو څخه ؤ، زموږ په ادبي ټولنه کې ددوی مرګ یوه د خواشینۍ ور ضایعه ده. اوموږ دخپلې ژبې د اعتلا اوترویج په لار کې د یادولو ور خدمتونه کړي وه لکه څرنګه چې په ئې هر وخت دعـوه کول د پښتو مجلې د خپرېدو پهجریان کې دپښتوځینو نامعلوموآثارو غږېدل اوځینولیکوالو معرفي، د کندهار ادبي انجمن دد نیاد نامتو ادبي اوعلمي انجمنوااو کادیمیو سره معرفي کول او د اداري لیکنو په پښتواړول دپښتو مشاعره بابول دپښتو دصرف ونحوي اولغاتو رواج اواساس ایښودل ئې دخپلو افتخاراتو څخه بلل.

مرحوم «پښتون» د انګریزي اردو، پنـجابي، ګجراتي او هندي ژبې څخه استفاده کولای سوای چې ځینې ترجمې په ئې هم ځنې کولې په یاد سي کي هم د ښه قلم خاوند ؤ. او موږ ته ورته لدې چې ځینې اثار ئې ترجمه کړي دي خپل څو تالیفات هم لري، په لیکنو کې دساده او بې قیده سبك برخوا ؤ خپلې نوشتې ئې دوحشي او نادر لغاتو څخه لیرې ساتلې، اور نو دده پېژند دګلوي او د ژوند څو نوري خبري یدې ډول دي:

مرحوم محمدعثمان پښتون په ۱۲۶۵ ش کال د کـندهار د «معروف» په عـلاقه کې د خپل نیکه په کلا کې زو کړی ؤ دده د تحصیل زمانه برخه د اوسني افغانستان څخه دباندې سوې وه داسې چې دعمر په [۷] کال ئې پلار د پښتونستان و چمن ته فرار سوی او دی هم [۸] کال دچمن وښوونځي ته ټاچول سوی ؤ. په پنځه کاله ئې لومړني تعلیمات پسای ته رسولي او بیا لي ځني وخلي ؤ همدا رخت ؤ چې پلار ئې وفات سوی او دی د کـندهـار

ارغسان ته راوګرځېدی لږ موده وروسته بیرته چمن ته ولاړ او د هغه ځایه [ کوټې ته ] ورپسې بمبئی ته رهی سو او هلته ئې لیلیه ښوونځی وویل د انګلیسي او ځینو نورو ژبو د زده کړې وخت ئې هم دغه ؤ دلته څه وخت پاته سو څو چې د خپل هیواد په نیت ئې هغه ځایونه ترك کړه او کندهار ته راغی او موړی پلا د [ طلوع افغان ] په اداره کې په ترجمانی ونا کل سو او دا کار ئې تر څلورو میاشتو پوری کړی وو ورپسې په سپین بولدك کې سیاسي مامور مقرر سو کله چې یونیم کال وروسته دا ځای نګه لغوه سوه نو موړی د کندهار په مرکز کې د پاسپورټ او ضبط احوالات په ماموریت ونا کل سو دلته هم تر یو نیم کال پوری ؤ څو چې ښاروالی ته ولاړ او هلته د تحریراتو سر کاتب ورپسې د تحریراتو مامور مقرر سو، چې پدې تاریخ کې د ښاروالی د ریاست چاری هم ورسپارل سوی دی څو چې مقوی اړو دوه پیښ سو او دی ئې د کاره ایسته کړ چې مقوی اړو دوه نیم سو مهر دل حسان بیرته ښاروالی ته راوست او څه موده ئې دا وظیفه اجرا کړه لدې وروسته ئې د سوداګری ته پیل وکړ چې تر ۱۳۱۱ ش کال پوری ئې سوداګری کول پدې کال په کندهار کې د پښتو ادبی انجمن تاسیس سو او دی ئې په ریاست ونا کل سو چې د «پښتو» مجله هم دده په مشرتوب خپرېدله تر ۱۳۱۶ ش کال پوری چې دا انجمن په کندهار کې ؤ . مرحوم محمدعثمان پښتون ئې رئیس ؤ څو چې دا انجمن د کابل په ادبی انجمن کې منحل سو نوموړی د پوهنی د وزارت د تعلیم او تربیې په ریاست کې په غړیتوب ونا کل سو، دی کار ئې تر څه وخته دوام وکړ بیا بیکاره سو . خوارښ ئې د سپین ږیرتوب عمر پر کور تېراوه او په عین حال کې د استراحت ئې ډېری مقالې او مضامین و جرائدو ته ورلېږل .

څو دادی چې څو ورځې دمخه د جمعې په ورځ د حوت پر ۲۶ نېټه د یوې ناروغی په اثر د عمر پر ۷۵ کال وفات او موږ پښیل روښ د لوی خدای [ج] څخه بخښه ورته غواړو او د ښو خدمتو ئې ستاینه کوو .

«اداره»

# ګرېستف کلمب

یوالځی د ژوند بې شمېره خواری ورور سېدی تر ټولو او بدبختی دده لپاره داوه چې د نوموړی کشف څخه ئې معنوی استفاده هم ونکړه ځکه دده هندوستان ته لار خلاصول ته او په اشتباه ئې وکړه چې د نوی دنیا پر سور پوستانو ئې د هندیانو ګمان وکړ. دامریکا کاشف ادس خلګ کریستف کلمب بولی حال دا چې تر دده زر کاله دمخه یو بودائی ملا چې اصلاً چینائی ؤ او [هوشین] نومېدی ۵۰۰ کاله تر کلمب دمخه یو بل سړی لیف اریکسن دوباره د امریکا پر کشف موفق سو او هغه کورونه چې ده په [ماساچوسټ] کې د چاراز دسیند پر غاړه جوړ کړی وه تاریخ لیکونکو ښکاره کړېدی دا کورونه د [هاروارد] د پوهنتون سره نژدې جوړ شوی وه .

کریستف کلمب به همیشه د تاریخ په پانو کې د لوی قهرمان په نامه یاد به سي هغه وخت چې کړ ده خلګ لدې سفره تښتېدل یوالځی دده داسپېنی اراده وه چې دا کار ئې عملی کړ او هر کله چې به د سفر په دوران کې خپلو ملګرو له خوا په قتل تهدید کېده ی دده یوالځی ږغ به داو د مخ ته ځی! مخ ته ځی! .

« د پښتنې ددوهم مخپانه »

کښوی هلته چې د حسن او ښایست په موجونو کې زخمونو زړونه پورته کښته کېږي، هلته چې د ناز او کرشمې طوفانونه د نقوی بلند بنیاده ماڼۍ ګانې نړوي .
هلته چې د مخمورو سترګو دل فریبانه نګاه وې بې دردان جمال پرسته کوي .
په هغه رندانه تولنه کې چې د موسیقی دلانګېزه نغمې دزړونو غوښې غوړوي، په هغه محفل کې چې د تاك اور دمیخوری سینې لمبه وي اوروي هلته په ما بسې ځان ملالېدنه کوه زه الیم .

* * * *

په آسمان خراشو کې ځای نلرم، په اوږدو او ښایسته ښنګلو کې هسکو ګڼه خوند نه راکوي د هغه لایتناهي فضا زما د فکر د مرغه جولانګاه نه شي کېدای، په شفق او طلوع کې نه ځانېږم په شنو کښتونو او مسورو باغونو کې زما ځالې نشته د ګلونو په وږمو او د مستو بېغلو په تبسم کې ځای نلرم هلته مه راځه .

* * * *

د خزان په ژېړو منظرو کې چې د عمر ورو ستنۍ لحظې راښئي او د ژوندانه داوښتلو او بې ثباتي راز تفسیروي . هلته په ځیر ځیر مه ګوره ما نشي موندلای د شاعرانو د بلند پروازۍ او نش تخیل زه نه یم ملګری، د فلاسفه ؤ په بې عمله کرښو کې زه راګیر شوی نه یم د ظالمانو په تاریکو دماغـونو او سختو زړو کې زما ګـذر نشته .

دخود ساخته معبودانو په محضر کې ناسته نه لـرم ځان مه سرګردانه کوه .

* * *

آخ مرموز جهانه ته چیری نې ؟
زه دانه خـورا نژې سـتا نر سترګو لانـدې نیهام یم ...
چیری ؟
په کوم ځای کې ؟؟ په کوم محفل کې ؟؟
دخوارانو په سینو کې زما کور او د مظلومانو په جونګړو کې زما تاتوبـی دی .
که نه غواړې په رشتیا سره ما وویني نو داستغنا له آسمانه د خوارانو و کوګل او د مظلو-مانو و بورجل نه را کښته شه او که نه ! نـه اې بـرېښانه ارواح به ما بسې مخ کې او آسمانونه بې ځایه مه پلټه ما نشي موندلای .

« ام کرزی »

